

# دثور دانقلاب [illegible]

دافغانستان دخلک دیموکراتیک گوند د مرکزي کمیټې ارگان


## دا.خ.د.گ د مرکزي کمیټې

# د مبارکۍ پیغام

ملگرو ، دوستانو اوهیوادوالو !

دافغانستان د خلک دموکراتیک گوند مرکزي کمیټه دافغانستان دخلک دموکراتیک گوند دهیواد دکارگری طبقې او ټولو زیار کښانو د گوند دجوړیدو دیوویشتمې کالیزې له امله د گوند ټولو غړیو اوهیواد پالونکو ته مبارکي وایي

موږ دافغانستان د خلک دموکراتیک گوند د جوړیدو یوویشتمه کالیزه پداسې شرایطو کې نمانځو چې دافغانستان خلک دافغانستان دخلک دموکراتیک گوند په مشرۍ داقتصادي ټولنیز ژوندپه ټولو برخو کې ستروبریالیتوبونو او ارزښتو نو ته رسیدلي او انقلابي بدلونونو ته له پخوا یاتې ټینگښت او ژورتیا ورکوي .

د افغانستان د خلک دموکراتیک گوند داقتصادي ټولنیزو بدلونونو د سازمانونو کوونکي او دنیکمرغي او سمسورتیا په لور د خلکو دپرگنو د لوري ورکوونکي ځواک په توگه زموږ د خلکودمبارزې په سر کې ولاړ دي او انقلابي غورځنگ ته لا یو بریالیتوب ښخه بل بریالیتوب ته لار ښوونه کوي .

تیر کال دافغانستان دخلک دموکراتیک گوند د جوړیدو شلمه کالیزه په هیواد کې په پراخه توگه ونمانځل شوه.

په تیر کال کې زموږ دگوند دافغانستان دکارگرې طبقې او دټولو زیار کښانودمخکښ گوند دسترکارپه نتیجه کې دهیوادپه ژوندانه کې مهمې پیښې وشوې. دغه پیښې دادي.

دافغانستان ددموکراتیک جمهوریت د تاریخي لویې جرگې ، د سرحدي قبایلو دعالي جرگې جوړیدل ،ددولتي قدرت او اداري دسیمه ییزوارگانونو دانتخاباتو پیل او په هیواد کې دوگړ نۍ واکمنۍ د ټولنیز و ستنو د پراختیاپه نسبت دنوي چلند په ارتباط دمهمو سندونو تصویب .په لویه جرگه او دقبایلو په عالي جرگه کې دخلکومنتخبواستازیو دافغانستان د خلک دموکراتیک گوند له کورنۍاو بهرنۍ سیاست سره چې زموږ دخلکو د ښتیز و گټو څرگندوي دي خپل غوښ ملاتړاعلام کړ . دقدرت او اداري دسیمه ییزو ارگانونو انتخابات چې همدا اوس د کابل په ښار او وولایتونو کې پای ته رسید لي خلکو دانتخاباتو په کار کې په آزاده او دموکراتیکه بڼه گډون وکړ او کوي یې . د هیواد داوسیدونکو غوښ اکثریت دافغانستان دخلک دموکراتیک گوند دمرکزي کمیټې د عمومي منشي او دافغانستان ددموکراتیک جمهوریت دانقلابي شورا د رئیس ملگري ببرک کارمل دلسو تیزسونو ، دافغانستان ددموکراتیک جمهوریت دانقلابي شورا (د۱۳۶٤ کال دعقرب ددوه ویشتمې)داعلامیې او دافغانستان د خلک دموکراتیک گوند د مرکزي کمیټې د۱٦ پلینوم له سندونوڅخه چې په هغو کې دانقلاب دټولنیزو ستنو دپراختیا له امله نوي چلند و ړاندې شوي په مینې او ولولو سره هرکلي وکړ او دهغو د تحقق لپاره یې خپل تیاري څرگند کړیدی .

گوند د خلکو له پرگنوسره خپل نه شلیدونکې پیوند ټینگوي په او سوخت کې د خلکو پراخې ډلې تر پخوا زیات دافغانستان دخلک دموکراتیک گوند اود ثور دپړ تمین انقلاب دهدفونود تحقق په لاره کې په ځان پورې دمربوط کار په توگه مبارزه کوي د گوند لیکې د زیار کښانو د ډیرو ښو استازیو په منلو سره په پرله پسې توگه پیاوړې کیږي په زرگونو کارگران اوبزگران دانقلابي جگړې په تاوده سنگر کې له گوند او انقلاب سره خپل سرنوشت ته غوټه ور کوي .

نن زموږ د گوند غړ په زرگونو کلیو او بانډو کې خپل ځواکمن انعکاس لري .په تیر کال کې زموږ پر مختگ او ارزښتو نه دهیوادپه سیاسي ، پوځي حالت کې دجدي بدلونونو دپیل څرگندوي دي . دغه بریالیتوبونه په داسې شرایطو کې ترلاسه کیږي چې دافغانستان دانقلاب دښمنان، د سیمې ارتجاع، هژمونیزم او امپریالیزم په سر کې دامریکادمتحده ایالاتو امپریالیزم زموږ د آزاد او خپلواک هیوادپه کورنیو چارو کې لاس وهنه هره ورځ زیاتوي .ارتجاع اوامپریالیزم هڅه کوي چې دانقلاب ضد کسان په ډیر و ژ ونکو وسلو سمبال او وسله وال کړي .خو هغوی په دوا مداره توگه دخلکو په منځ کې خپلې ستنې له لاسه ور کوي او خلک د دښمنانو ر ښتیني توره څیره پیژني .

په هیواد کې اوسنی حالت دانقلاب دمدا فعینو په پر له پسې پیاوړ تیا سره مشخص کیږي وسله وال پوځ پیاوړی شوی او زموږ د هیوادپه سل گونو زره تنه ا تل بچیان له وسله وال پوځ سره په یو ځای کیدو سره په اتلوا له توگه دانقلاب اودهغه دارزښتو نو دفاع کوي.

د هیواد په ډیرو سیمو کې په خپله خلکو دانقلاب ضد پر خلاف دمبارزې اړوند مسئلو حل په مستقله توگه په غاړه اخیستی دی دا ټول دافغانستان د خلک دموکراتیک گوند او د ثور انقلاب په شا وخوا باندې دخلکو دورځ په ورځ زیا تیدو نکې یووالي او یو موټي والي ستري نښې نښانې دي .

ویاړ دي وي د هیواد په هغو رښتینو بچیانو چې دانقلابي جگړې په سنگر کې په ځان تیرید نې او سر ښندنې سره دخلکو سولې او امنیت دفاع کوي دانقلاب داتلانو حماسي زموږ د راتلونکو د مبارزې الهام بخښونکې دي .

دانقلاب او خلکو جنایتکاردښمنان له سزا څخه د تښتیدو لاره نه لري زموږ دوسله وا لو ځواکونو تیره توره دهغو کسانو په سر راکښته کیږي چې نه غواړي په خپل پلرنی هیواد کې دسوله ییز او پتمن ژوند لاره دوام وکړي او د خلکو نیکمرغي اوهوسا یي تا مین شي .

گرانو ملگرو !

د افغانستان د خلک دموکراتیک گوند مرکزي کمیټه د ثور دملي ـ دموکراتیک انقلاب داصولو په چوکاټ کې دپرگنو په منځ کې د سیاسي کار ، دانقلاب بهیر ته د خلکو د زیا تو ډلو جلبولو او دانقلاب دودې او د هغه ددفاع په خاطر د هیواد پالو ځواکونو دیو موټي والي حیاتي ارزښت څرگندوي .

دخلکو دانقلابي واکمنۍ د ټولنیزو ستنو د پراختیا له امله نوي چلند د هیواد د ملي گټو او ښیگڼو سره سم د سراسري سولې او آرامۍ د تامین لپاره زموږ رښتینې تیاري څرگندوي په اوس وخت کې د سیاسي متحدینو د جلب لپاره پراخه او هراړخیز کار ستر ارزښت لري باید د خلکو پراخه ډلې ډیرژر دانقلاب کار ته جلب شي. پری ږدو چې ان زموږ یو پتمن هیواد وال د نو یو بدلونونو له بهیر څخه بهر پا تې شي .

ملگرو دوستانو !

د افغانستان د خلک دموکراتیک گوند په وسیله وهل شوې لاره دخلکو دنیکمرغۍ،سوکالۍ ، سمسورتیا او د پخوانیو اقتصادي ، ټولنیزووروسته پا تې وا لو دله منځه وړلو لپاره داتلوا لو اوویاړلومبارزو لاره ده گوند له بل هر وخت څخه په لا فعا له او لاپرله پسې توگه دتیروژغنې گړیو انحراف او ماجرا غوښتنو پر عوا قبو باندې بریا لی کیږي موږ د خپلې انقلا بي کړنلا رې اوسیاسي فعالیت په تنظیم کې دانقلابي علمي تیوري په پخوبنسټونو تکیه لرو زموږ گوندي سازمانونه دانقلاب ضد کسانو پر خلاف جگړه کې اودنوي ټولنې د جوړو لپاره په مبارزه کې د گړ او د ملگر تیا د کارستره مدرسه تیرو ي .

د افغانستان دخلک دموکراتیک گوند سیاسي ، سازماني او ایدیا لوژیک یووالي په زیا تیدو نکې تو گه ټینگیږي گوند په خپلو پیاوړو متو د ډلو بازیو ، غیر مسوولانه چلندونو ، بې دسپلینۍ او نورو منفي او انقلابي نوي طراز گوند له خصلت سره دپردیو عوا ملو پر ضد غوڅې مبارزې ته دوا م ورکړی او ورکوي یې.

دافغانستان د خلك په دموکراتیک گوندکې غړیتوب زموږ د هیواد دبچیانو په ستروياړ او دوطن پا لنې او پرولتري انترنا سیونالیزم ته دو فا دارۍ په لوړ مظهر بدل شویدی .

موږ نن دافغانستان دخلک دموکراتیک گوند د جوړیدو په یو ویشتمه کالیزه کې ټینگه عقیده لرو چې :

د افغانستان خلک د افغانستان د خلک دموکراتیک گوند په مشرۍ په ډاډ سره د را تلو نکي خوا ته گوري او په نه ستړې کیدو نکي کار سره سولې ، آرامۍ او پرمختگ ته د رسیدو لاره او اروې نږدې را تلو نکي به زموږ په هیواد کې سو له اوامنیت په سو غات راوړي .

د افغانستان دخلک دموکراتیک گوند مرکزي کمیټه د گوند د جوړیدو دیوویشتمې کالیزې له امله د عمومي اشر د جوړیدو په خاطر د افغانستان د خلک دموکراتیک گوندغړیو ، دزیارکښانو دسازمانونو او کولکتیفونو د غړیو پیشنهاد مني .

دغه پیشنهاد زموږ د گونداو دهغه لوړو وگړ نیو هدفونو ته زموږ دزیار ایستو نکودژوردرناوي ستره نښه ده.

په رښتینې تو گه په انقلابي کار او فعا لیت سره دافغانستان دخلک دموکراتیک گوند د جوړیدو یو ویشتمه کالیزه د انقلاب ضد کسانو پرخلاف په مبارزه اودنوې عادلانه ټولنې د جوړو لو په کار کې دخلکو په لا زیات جلبولو کې دسترو بریالیتوبونو په کال بدله کړو.

د افغانستان د خلک دموکراتیک گوند غړیو !

دسولې او ملي سرا سري آرامۍ په خاطر لا زیا ته پرله پسې مبارزه وکړئ .

ژوندی دې وي گونداوانقلاب، خلک اوزموږهیوادافغانستان !

مړه دې وي هغه کسان چې زموږ د هیواد سپیڅلو پولو ته دروغ او تور، اسارت اوسپکاوی، مرگ اوویناړاوړي!

نیکمرغه دې وي د افغانستان د خلک دموکراتیک گوند دجوړیدو یو ویشتمه کالیزه !

د افغانستان دخلک دموکراتیک گوند مرکزي کمیټه



## دگوند غړي په لومړي لیکه کې

دا.خ.د.گ غړي د ا.خ.د.گ دکار اومبارزې دکلونو په څیر اوس هم د مبارزې په لومړۍ لیکه کې ولاړ دي. د هغوی د ننني مبارزې هدف په عمل کې دا.خ.د.گ دمرکزي کمیټې د شپاړسم پلینوم دتصمیمونواو پریکړو تحقق دی چې موږ په دې باب ستا سو پاملر نه ورځپاڼې ته دارسیدلو خبرونو او رپوټونو ته را اړوو .

## دوروستۍ برۍ لپاره

**دسرتیري دمکلفیت دورې له پای ته رسولو وروسته مې بیاهم تصمیم ونیو چې وسله پر ځمکه کښینږدم**

دسرتیري له هماغو لومړ یو ورځو څخه مې د رسالتمند سرتیري په تو گه تل هڅې کړې چې دجگړې په لومړۍ لیکه کې واوسم . له همدې امله دسرتیري خدمت له بریالي پای ته رسولو وروسته مې بیا ژمنه وکړه چې دانقلاب دهدفونو تروروستۍ برۍ پورې وسله پر ځمکه کښینږدم پور ته خبرې عبدا لسلام دوسله وال پوځ دیوې قطعې سرتیري وکړې.

## دخلکو په مرسته

**دبزگرۍ په دندې بر سیره چمتو یم په هر ځای کې چې لازم وي دنده ترسره کړم .**

٤۳ کلن یم په خپله ځمکه کې په کارکولو سربیره هیڅ کله له ځوانانو څخه د خپلو انقلابي دندو په سرته رسولو کې وروسته نه یم پاتې شوی او له خپلو همسنگرو سره څو ځلې کلیو ته لاړم او خپلو هیواد والو ته مې آرامي را وړې ده .

دغه خبرې دبغلان ولایت ددوشي ولسوالۍ دآهنگرانو دکلي دبزگر محمدامان وې .

## دکار او مبارزې مخکښ

**دانقلاب دارمانونو دتحقق لپاره په سر ښندنې او ځان تیریدنې سره هڅې کوم .**

د یو رسالتمند کارگر په تو گه خپله دنده بولم چې د تولید سطحه لوړه کړم او د خپل گوند د میلاد په ویاړمې زیات کاروکړ اودخپلې موسسې په امنیت کې مخکښ یم .

دغه خبرې د شبرغان د جرقدوق د سلفاید د ځانگې کارگر رحمت اله دی .

## دپلینوم پریکړې تطبیق کړو



په دې باب محمد نبي د بگرامیو دنساجي فابریکې کارگر او خو تنه نور گوندي غړي خبرې کوي .

(۲ مخ)

## دگوند دسیاست ننگه کوو



په دې اړوند دملي سوداگر محمد هاشم او د هیواد دبیلا بیلو ټولنیزو قشرونو د یو شمیر استازو خبرې لو لو .

(۳ مخ)



# نیکمرغه دې وي دا.خ.د.گ یوویشتمه کالیزه!







# د تاریخ په پاڼو کې

دافغانستان خلك دموكراتيك گوند، د سلطنتي واكمنی پـه كلونوكی د افغانستان دخلكو دملی آزادی بخښونكی اوټولنیز غورځنگ په لومړۍ لیکه کی ولاړ و .

په انځورونو کی : د ا.خ.د.گ د مرکزی کمیټی عمومی‌منشی اودا.د.ج د انقلابی شورا رئیس ملگری ببرك كارمل د ثور انقلاب له‌بری مخکی په یو میټنگ کی د خبروکولو په وخت کی * دوه نور انځوره دافغانستان‌دخلك دموكراتيك گوند ترمشری لاندی د ارتجاع او استبداد ضد سترو مظاهرونونی .

د افغانستان د خلك دموکراتیك گوند چی ۲۱ کاله مخکی د افغانستان د ټولنیزی ــ سیاسی مبارزی د قانونمندی بشپړتیا اوملی دموکراتیکو آرمانونو ته د رسیدو لپاره په انقلابی کاړند، او هدفمنده مبارزه د هیواد دمترقی او هیوادپالو ځواکونو داوږدی‌مبارزی د اړو لو په نتیجه کی د افغانستان په سیاسی ډگر کی را ښکاره شو د افغانستان دخلکو دتاریخی پاڅون لپاره یی‌سیاسی ربښتینی مشری تامین کړه . همغه تاریخی‌لار چی د ا.خ.د. گ‌د افغانستان د کارگری طبقی او ټولو زیارکښانو گوند په دغو کلونو کی وهلی نور ددغی ادعا د حقانیت په‌باب کو چنی‌تکنی‌توب ته وخت نه پریږدی .

په‌ټولو سیاسی توکو نواو ولبندیو کی ،یوازی گوند و چی وپوهید ، په دغه تاریخی پړاو کی یوازی د فیوډالی ضد او امپریالیستی ضدملی دموکراتیك انقلاب کولای شی دفیوډالی بیرو کراتیك قدرت د له منځه وړلو او دهیواد په ورانده د ربښتینی ټولنیز او ملی‌پرمختگ دتامین‌عملی‌لرلید پرانیزی او د داسی انقلاب ټولنیز بنسټ دکارگرانو ، بزگرانو ، ټولو زیار کښانو دملی بورژوازی په‌گډون‌دټولو ملی او هیواد پالو ځواکونو یووالی‌دی. گوند په‌لومړی‌گام کی دخلك په دموكراتيك علماً تنظیم شوی مرام کی دمبارزی یوازنی سمه قطب نما دهیواد انقلابی غورځنگ په واك کی ورکړه ، غورځنگ یی پری سمبال کړ او ویی کړای شول د ښکاره او پټی ،قانو نی ، پارلمانی اوغیر پارلمانی سوله ییزی او غیر سوله ییزی مبارزی دبڼو دیوکولو تاکتیك عملی کړی . دگوند نشراتی اورگانونو (د خلق‌او پرچم جریدو) د مرام اومترقی اند یشو په ښکاره خپرولو کی اساسی رول ولوباوه د گوند پارلمانی مبارزی او د پارلمانی فر کسیو ن اتل فعالیت یی د غور ځنگ‌پریون او دافغانستان د خلکو پر عمو می و ینښتو ب بانـه ی زیاته اغیزه وکړه .

گوند له ۱۳۴۳نه‌تر ۱۳۵۲ کال‌پوری‌دکارگرانو،زیارکښانو، روښانفکرانو، محصلینو او ښاریانو څه دپاسه ۲۰۰۰ غونډو او مظاهرو تهسازمان ورکړ او رهبری یی کړی . په خلکو کی یی په پراخ تبلیغاتی فعالیت او په اردو کی په پټ کار لاس پوری او د سلطنت د راپر ځولو لاری

چاری یی‌ولټو لی او دسلطنتی نظام په‌ړا پر ځو لو کی یی اساسی رو ل ولوباوه او په پای کی ددی وخت راورسید چی دافغانستان دتاریخ‌لوری له بیخه بدل شی ،دغه مسئله د ا.خ.د. گ په مشـری د ۱۳۵۷ د ثور انقلاب په‌بـری سره حل شوه ، ځکه دافغانستان انقلابی غور ځنگ بل سیاسی مشر نه درلود ، د ا. خ.د. گ‌د خلکو دنیکمرغی او نوی او مترقی‌افغانستان د جوړولو لپاره دافغانستان د ربښتینو هیواد پا لو دتاریخی ارادی او مبارزو یوازنی وارث و چی یوازی د همغه د پیاوړی ، پر له پسی اوهدفمندی رهبری له مخی دغه مبارزه بشپړ بری ته رسیدلای شوه .

د ا. خ.د. گ د ۱۳۵۷ د ثور د ۷ نیټی د انقلاب د بریا لی‌کو لو او د ۱۳۵۸ د جدی په ٦ نیټه نوی پړاو ته د انقلابی تیرید لوپه برخه‌کی

وطن پکا ر اچوی چی د خلکو ژوند،عملاًبه شی ،خو څر ــ گنده ده چی‌دا.خ.د.گ‌تاریخی لاره‌په‌هیڅ‌شان‌صافه ،اوا رهاو بی ستونزو نه وه .او نه‌شول کیدا ی وی .زموږ گوند تل د افغانستان د خلکو د کور نیو او بهر نیو دښمنا نو د دیرو سختو د سیسو او بریدو نو هد ف گر ځید لی دی . تـر انقلاب د مخه د ځوا نتر ب او د سیا سی اوایدیولوژیك نا ــ پوخوا لی له امله زموږ پـر گوند باند ی اوږد انشعا ب و زغمل شو چی له سختـو ستو نزو سره یی مخا مخ کړ. دغه عوامل دانقلاب په‌لومړ ی پړاو کی هم سبب شو ل زموږ پر گوند او ټو لنه‌سختی ناخوا لی وزغمی. د هغومسئلو پردرانده پیټی برسیره چی له تیرووختو په میرا ث پاتی ود تو لنیز ژوند ددموکرا تیـزه کولو بهیر او د ځینوټولنیزو سیاسی مهمو مسئلو لکه‌ملی، قومی ،مذهبی‌دودیز و،اقتصای

آز مثبت سره مخا مخ‌شو . دغه امپریا لیستی لاس‌وهنـی چی د ملگرو ملتو د معتبـرو سندونو د تعر یف له مخـی «نا اعلامه شوی جگړه » بلـل کیږی د انقلاب دنوی پړاو په درشل کی زموږ دگرا نهیواد خپلوا کی ، دخاوری بشپړتیا او ملی وا کمنی له سخت خطر سره مخا مخ‌کړل .گوند دیادو شوو ټولو ستونزو سره سره وکړای شول پرڅل بیا خپـل حیاتی او تاریخی پیاوړ تو ب وښیی او دافغانستا ن پـه غیر تی خلکو باند ی‌په تکیی لرلود شوروی اتحاد دانتر ــ نا سیونا لیستی سربښندونکی مرستی څخه په استفادی‌سره د امریکادامپریالیزم او د هغه د متحد ینو نقشه له منځـه یووړه . سره له دی دانقلا ب او دافغا نستا ن د خلکو پر ــ خلاف نا اعلام شوی جگـړ ی چی دویتنام‌تر جگړی وروسته یی‌په نړ ی کی د امپریا لیستی

په هیواد کی د ربښتینوهیواد ــ پالو پراخی او سربښندو نکی مبارز ی تراو سه په ټـول هیواد کی خلاندی او غرو ر پیدا کوو نکی دی ، دانقلا ب دښمنا نو ته مرگو نی‌اوسخت گوزا رو نه ور کړ شوید ی. دامریکا امپریالیزم ، دچیـن هژمو نیزم د لویه یځی‌ارو پا ټاکلی هیوادو نه ، عر بی او د سیمی ارتجاع د انقـلاب‌د دښمنا نواو د دو ی دجنگـی تا لی ختو په گټه د ملیونو نو ډالـرو په لگـو لـو و سلو ور کولو او د تبلیغا تی‌رو جی تخر یب د لوی ماشین پـه کارولو سره وس نه ی‌رسیدـ لی په هیواد کی دحا لت دلا عادی کیدو اوپه ملی او بین ــ المللی ډگر کی د انقلا بـی وا کمنی دتوان‌او باور دلازیاتـ تیدو مخه ونیسی . دنااعـلام شوی جگـړ ی د دوا م او سختوا لی او له هغی څخه د راپیدا شویوستونزو سرسره بیا هم ټولنیز او اقتصاد ی



# د مبارزی او جوړونی کلونه

په‌افغانستان‌کی دانقلابی‌بهیرد لرلید ماهیت او ځا نگړ نو پر علمی پوهیدو تکیه لر له . د دغوسپیڅلو هد فو نو ورو وروسرته رسو ل زموږ د هیواد د خلکو د ژوند ټو ل اړخونه‌په اوږده موده کی د اقتصادی ټولنیزاوفرهنگی‌پلوه په‌نړ ی کی یودیر وروسته‌پاتی هیواد و له بیخه بدلو ی. زموږدانقلاب توپان فیوډالان، د یحیی کور نی سردارا ن ، سودخوا ره ، بیرو کرا تیك او ځان پلور لی‌لو ړ قشر ، سیمه ییزمرتجعین اومستبدین چی زیاتی بیر ی یی‌زموږ پر خلکو ظلم کاوه اودهغوی په وینو د لاس په تنها کو یی‌ژوند کاو ه راو پر ځو ل اوله‌منځه یوو ړل ،ځکه او او به پرله‌ پسی بزگرا نو ته ور کو ل کیږی ، انقلا بی نوی‌قوانینو داتباعو دمو کرا تیك‌حقـوق تضمین کړی اودزیارکښا نود بنسټیز و گټوښکارندو ی‌دی. گوند او حکومت د صنفـی اتحادیو ، کوپرا تیفو نو او نورو پرا خو ټو لنیزوسازما ـ نونو دود ی په برخه کی‌پـه هڅو نی او ملاتړ سره دهیواد په‌تاریخ‌کی دلومړ نی ځل‌لپاره د دولت په اداره او ټو لنیزو چارو کی دزیا ر کښا نو د گډو نـ‌عملی‌لاری‌چاری‌برابروی. گوند او انقلا بی حکو مت‌ټول

او فر هنگی مسئلو دحل په باب چلند له سختیو،تیروتنو، ښویدنو ، انحرافاتو اویووالی ماتولو سره یو ځای و.په‌پا ـ یله کی زیاتره دندی چـی د ا.خ.د.گ، په پام کی نیو لی وی ، سرته و نه رسیدی او دخلکو په‌گټه پیل شو ی‌بد ـ لونونه له سستی سره‌مخامخ شول .خو گوند په خپلو پیا ـ وړو لاسونو،ذهنی گرا یی ، انحرا ف ،ماجرا غو ښتنی ، شخصیت پالنه ، دترور بـه او له انقلابی دمو کرا تیـك قانو نیت څخه سرغړو نی له منځه یووړ لی او دملی‌ــدمو ــ کراتیك انقلاب له ضـروری پړاوو نو ځخه‌دچټك تیریـدو مخه یی له منځه یووړه . له‌دی سره جو خت د ا.خ.د. گ د انقلاب تر بیر غلاند ی زموږ د هیواد د ټولودموکرا تیکـو او هیوادپالو ځوا کونو دیووا ـ لی په‌با ب‌خپل اندعملی کړ او په افغا نستا ن کی دپلارو طنی ملی جبهی دجوړولو سازمانو ـ ونکی شو . له بلی خوازموږ انقلاب د خپل بری له همغـه پیل څخه ، دبین‌المللی امپر ـ یالیزم او دهغه د متحد ینو له سخت او زیا تیدو نکی‌مقاومت په نتیجه کی چی‌زموږ دهیواد په‌چارو کی وسله وا لـه او سازمان مو ند لی پرا خـه لاس وهنه پیل‌کړه له سخـت

عملیا تو دیرلوی مقیا س‌خانته نیو لی ،دوام وکړ ، د دغـی جگړی په نتیجه‌کی زموږهیواد ته له هغی څخه رسید لـی ـزیانونو نه‌تر او سه شه‌دپاسه ۳۵ملیاردوافغانیو ته رسیدلی دی ، د هیواد پـه ځینو سیموکی‌یو ځی‌سیاسی حالت گډوډپاتی‌دی ، اوسیدو ـ نکی ،خوریږی، وینی تویو ل کیږی اومادی‌زیانو نه‌زیاتیږی که چیری نن‌ورځ زموږ خلك له‌ستونزو او محرو میتو نـو سره مخامخ‌دی، گرم یی‌یوازی د انقلاب ضد کور نی اوبهرنی یعنی زموږ د هیواد او انقلاب پرخلاف دامپریا لیستی نا ــ اعلام شوی جگړی‌عاملین دی. نو له بهرڅخه دراتیږل شو یو انقلاب ضد پرخلاف غوڅـه مبارزه‌اوپر هغو باند ی‌بری ، د ثور انقلاب د سپیڅلوآرما ـ نونو او هدفونو دبری هرومرو شر ط او د هر ربښتینی‌هیواد ـ پال افغان سپیڅلی دنده ده .

دا.خ.د .گ په مشری د افغانستان ددمو کرا تیـك جمهوریت د انقلابی و سله ـ وال پو ځ ،اردو ، څارندوی ، خاد ،د انقلاب د سپا هیانو ، دانقلاب د مدا فعینو ، قو می او سیمه ییزو ځونډو نو او گند‌گونو ، سرحدی ملیشو ، او دځانی دفاع د ډلو له لاری

مهم‌بری ترلاسه شوید ی او ملی محصو لات تر انقلاب د مخه وخت څخه زیا ت‌تو لید شوی. خلك په ټول‌هیواد کی دخورا کی شیانو او دارتیاوړ نورو موادو له پلوه تر داچمن حده تا مینیږی . د هیوادپه حالت کی ورووررو مثبت‌بدلو ـ نونه چی د انقلاب د نوی‌پړاو له بری ورو سته پر له‌پسی دوا م‌لری په تیره سږ کا ل چټك شول او له سیا سی‌پلوه نوی کیفی حالت را منځته‌شو. دافغا نستا ن دټو لوخلکو د تاریخی او دودیزی لو یی‌جرگی په‌بریا لی جوړولوسـره ، د ا. خ.د. گ اودا.د. ج ددولت کور نی او بهر نی سیا ست له حقو قی پلوه د ټو لوخلکو دتایید وړ وگرځید .د هیوادد سرحد ی قبایلو دبی سار ی عالی جر گی په جوړیدو سره زیاتره له پاکستان اوایران سره د پو لود پو ښتلو له‌لاری چی هیواد ته د انقلاب ضـد او امپریا لیزم د جنگی‌اجیرانو د را لیږلو دلارو په تو گـه کارو ل کیـږی. د ا.د. ج د خپلوا کی ، آزاد ی،خـاوری بشپړ تیا ، پت اونا مو س د دفاع په باب د گوند ،انقلابی وا کمنی او د خلکو عـزم او تصمیم د پښتنو ، بلو څو ،

نورستانیو او نورو جنگیالیو قبایلو له عمل ،میر نی‌غو ښ او گډ تصمیم سره غوټـه وخوړ له .

په عین‌حال‌کی سږ کال‌په‌سیمو کی د دو لتی قدر ت او اداری د سیمه ییز و اورگا نونو د آزادواو دموکراتیکو انتخاباتو لومړ نی کال‌دی‌چی همدا اوس د هیواد په اوو م ولایت کی روان دی . سیاسی نوی‌حالت ددی‌امکان برابر او ه اوپه‌عین حال کی یی غو ښتل‌چی د ا.خ.د. گ په هیواد کـی د ربښتینی دمو کرا سی دلاپرا ــ ختیا لپاره د خپل کار کړ نلاره پراخه‌کړی او د انقلا بی‌واکمنی په‌ل ور د هغو خلکو دلاراغو ـ نډو لو د مبارزی د هیلی د چټکتیالپاره چی دارتجاع او امپریالیزم دناولو اوزهر جنو تبلیغاتو او دسیسو اوزور ـ زیاتیو له امله بی‌طر فه‌او ان دښمن دریځونه لری نوی‌چلند غوره کړی . د گوند اوانقلابی واکمنی مشری د ۱۳٦٤کا ل د عقرب په ۱۸نیټه داسی ارز ـ ښتناك گام پورته کړ او دگوند او انقلا بی وا کمنی دمشـی اسا سی کر ښی د انقلا بی شورا په فـوق العاده‌پراخه غونډه کی د ا.خ.د. گ دمر ـ کزی‌کمیټی د عمو می منشی او د ا.د. ج دانقلابی شورا رئیس ملگری ببرك كار مل په وینا کی دلسو تیزسونو په تر ځ کی وړاندی شوه . د ا.د. ج‌انقلابی شورا د ۱۳٦٤دعقرب د۲۲نیټی داعلامیی په صاورلو سـره د افغانستان خلکو او نړیوا لوته دنوی مشی قانونیت اعلام‌کړ. دهغو عملی تدبیرو نو له‌مخی چی د ا.خ.د گ‌دمرکز ی‌کمیټی شپاړ سم پلینو مونیو ل ، په هیواد کی دنوی‌مشی‌عملی کول همدا اوس پیل شو ی،اودد غی مشی په باب د افغانستا ن د خلکوبی‌ساری ننگه‌ښیی‌چی‌زموږ گوند د افغانی‌ټولنی دبدلونونو د لار ښوداو سازما نوو نکـی په‌تو گه خپلی تاریخی دند ی خلاقی او بریالی سر ته‌رسوی. خلکو ته داو ه سیاسی لارښو ـ ونه یو ضروری او حتمی‌څیز دی . د ژوند تجربه‌په کلکه ښیی چی د ا.خ.د. گ زموږ خلکو ته دغه شان رهبر ی‌ده. زموږ گوند انقلابی خوځنـده ځواك او له سمی لاری‌څخه‌د نه او ښتلو ضامن دی . له همد ی امله ده‌چی خلك گوند ته‌اړدی او گوند ته‌دخلکو ننگه‌لاز می‌ده.

نیکمرغه دی وی دا.خ.د.گ د جوړیدو یو ویشتمه کالیزه !

# عملی نمانځنه

دا.خ.د.گ، یـو ویشتمه کالیزه، دهیوادپه مرکـز او ولایاتوکی‌تولیدی، ساختمانی، ترانسپورتی‌کلکتیفونو اونورو موسسوپه تشدیدی اوگوزاریز کار او فعالیت سره ولمانځله اوپه دی اړوند ددغی نیکمرغه کالیزی دعملی نمانځنی لەمخی دورځپاڼی اداری ته لیکونه ، رپوټونه اوخبرونه رارسیدلی دی چی موږدلته دکارگرانو د گوزاریزو کـارونو دپایلو په اړونددخبرونولنډیز خپروو .

## له اجوری پرته کار

.د بگرامیود نساجی‌فابریکی کارگرا نهره ور ځ دکار له رسمی وخت نه نیم سا عـت مخکی او نیم سا عت وروسته له اجوری پر ته کار کوی‌تو ـ لید یی په سلو کی له ۸. څخه ۹. ته‌لوړ کړی دی .گوزاریز بریگا دا ن په سلو کی لـه سلو څخه زیات کار کو ی.

## نـوی پـروژی

دسپین غر سا ختما نـی کارگرانو دشمال سب‌ستیشن پروژه له ټاکلی وخت نه‌مخکی گتمی ا خیستو ته چمتوکړیده.

## داوطلب ښوونکی

د قوس له ۲۵ نیټی څخه .تر او سه ۹۵۳۵ تنه بی‌سواد هیواد وا ل د گونډ ی نا حیو له‌خوا د لیك لو ست دزده‌کړ ی په‌کـورسو نو کی تنظیم شوی دی او دگوند او ټو لنیـز و سا زما نونو ۳٦۵ تنه غړ ی‌د. لیك لو ست دزده کړ ی‌دداو ـ طلبو ښوو نکو په تو گه‌کور ـ سونو ته وروپیژندل شول .

## نـوی ښـوونځی

دکلاشاده‌اوقلعچی‌په‌سیمه‌کی‌د ۳ښوونځیودجوړولو کاردخلکو په همکاری پیل شویدی .

## د ماشومانو وزپیژندل

څـه دپاسه ..۲۵ تنـه ما شومان چی د ځینوعواملو له امله له ښوونځی نه پـاتی شوی وو دکابل‌ښار د گوندی ناحیو له خـواپه لـومړ نیو ښوونځیوکی شامل شوی‌دی.

## دستونزوله منځه ورل

دمرکز سیلو کـارگرانو د هیوادوالو د اړتیا وو دپـوره کولو لپاره د تشدید ی‌اوگو ـ زاریزو کارو نو په کو لو هر سیره د خرخی پله دبهسودو د سیمی ژرنده له ټا کلی‌وخت نه مخکی فعاله‌اوپکا ر واچوله.

دتحریر هیات تر نظر لاندی
مسوول مدیر : صدیق کاوون
ټیلفو نو نه
مسوول مدیر : ۶۲۴۷۴ سوچبورد : ۶۱۰۴۲ ۶۱۰۴۳ ۶۱۰۴۴ ۶۱۰۴۵ دلیکونو خانگه: ۶۱۰۴۳ اطلاعات : ۶۱۷۰۳ اداری : ۶۱۹۴۱ ۶۱۱۱۸ ویش اوشکایتونه : ۶۲۸۵۹
پستی صندوق : ۷۸۰ ددولتی مطبعی دویب آفسیت چاپ
بانکی حساب : ۱۰۱۸ پر۹ د یوی گنی بیه ۲۰ افغانی